د پوهنې وزارت

# اسلامي ښوونه او روزنه

## دریم ټولګی



د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ . ش.





# ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولـو کور دی
د پښـتـون او هــزاره وو
ورسـره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېــواد به تل ځلیږي
په سـینـه کې د آسـیـا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عــزت د هــر افغان دی
هر بچی یې قهرمـــان دی
د بــلــوڅــــو د ازبکـــو
د تـرکمنـــو د تـاجکـــو
پـامیریـان، نـورسـتانیـان
هــم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لمر پر شـنه آسـمان
لکــه زړه وي جـاویــدان
وایــو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** اسلامي ښوونه او روزنه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د اسلامي ښوونې او روزنې د برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** دریم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**بریښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست







# مفصل ایمان

**مـوږ پـه الله ﷻ، پرښـتو، آسـماني کتابونـو، پیغمبرانو، د آخرت په ورځ، قضاء، قدر ښه او بد چې د الله ﷻ له طرفه دي ایمان لرو.**




**زده کوونکي دې د ایمان د ارکانو په هکله یو له بل څخه پوښتنې وکړي.**




**۱- د ایمان د ارکانو نومونه واخلئ.**

**۲- مفصل ایمان له یاده ووایئ.**

**۳- لاندې جمله بشپړه کړئ:**

**- موږ په قضا او قدر............. لرو.**



# د تمجید کلمه

سُبْحَانَ اللّٰهِ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ، وَلا اِلٰهَ الاَّ اللّٰهُ، وَاللّٰهُ اَكْبَرُ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ.

## د کلمو تکرار:

سُبْحَانَ اللّٰهِ　　وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ

وَلا اِلٰهَ الاَّ اللّٰهُ　　وَاللّٰهُ اَكْبَرُ

وَلا حَوْلَ وَلا قُوَّةَ　　اِلَّا بِاللّٰهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ




**زده کوونکي دې د تمجید کلمه په خپلو منځو کې تکرار کړي.**




**۱- د تمجید کلمه له یاده ووایئ.**

**۲- د تمجید کلمه بشپړه کړئ: سبحان الله و الحمدلله....**



# د توحيد کلمه (۱)

**لاَ اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيکَ لَهُ، لَهُ الْمُلْکُ**

**وَ لَهُ الْحَمْدُ....**

## د کلمو تکرار:

- **لاَ اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ**
- **وَحْدَهُ لاَ شَرِيکَ لَهُ**
- **لَهُ الْمُلْکُ**
- **وَلَهُ الْحَمْدُ**




زده کوونکي دې د توحید کلمه یو له بل څخه وپوښتي.




۱ - د توحید کلمه له یاده ووایئ.

۲ - لاندې کلمه بشپړه کړئ:

لاَ اِلهَ اِلاَّ اللهُ.......................... وَلَهُ الْحَمْدُ...



# د توحید کلمه (۲)

....يُحْيِيْ وَ يُمِيْتُ وَ هُوَ حَيٌّ لاَ يَمُوْتُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِير.

## د کلمو تکرار:

- يُحْيِيْ
- وَيُمِيْتُ
- بِيَدِهِ الْخَيْرُ







## فعالیت

زده کوونکي دې په ډلییزه توګه د توحید کلمه بشپړه ولولي.



## ارزونه

۱ - د توحید کلمه په لوړ غږ ولولئ.

۲ - د توحید کلمه له یاده ووایئ.

۳ - لاندې کلمه بشپړه کړئ:

يُحْيِىْ.................................... بِيَدِهِ الْخَيْرُ....................................



پنځم لوست

# آیت الکرسي (۱)

﴿اللَّهُ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ لاَ تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَّلاَ نَوْمٌ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلاَّ بِإِذْنِهِ...﴾



## فعالیت

زده کوونکي دې د آیت الکرسي لومړۍ برخه په خپلو منځو کې تکرار کړي او یو له بل څخه پوښتنې وکړي.



## ارزونه

۱ - د آیت الکرسي لومړۍ برخه ولولئ.

۲ - د آیت الکرسي لومړۍ برخه له یاده ووایئ.



# آیت الکرسي (۲)

﴿...يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلاَ يُحِيْطُوْنَ بِشَــيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ اِلاَّ بِمَا شَــآءَ وَسِــعَ كُرْسِــيُّهُ السَّــمَاوَاتِ وَالاَرْضَ وَلاَ يَؤُودُهُ حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِــيُّ الْعَظِيْــمُ﴾ (البقــره/۲۵۵)




**زده کوونکي دې د آیت الکرسي دویمه برخه یو له بل سره تکرار کړي او یو له بل څخه پوښتنې وکړي.**




**۱- د آیت الکرسي دویمه برخه ولولئ.**

**۲- د آیت الکرسي دویمه برخه له یاده ووایئ.**



اووم لوست

# آیت الکرسي (۳)

﴿اللّهُ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ لاَ تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَّلاَ نَوْمٌ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلاَّ بِإِذْنِهِ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلاَ يُحِيْطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ اِلاَّ بِمَا شَآءَ وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ وَلاَ يَؤُوْدُهُ حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ﴾ (بقره / ۲۵۵)




**زده کوونکي دې آیت الکرسي په لوړ غږ ولولي او بیا دې یو له بل څخه پوښتنې وکړي.**




**۱- آیت الکرسي ولولئ.**

**۲- بشپړې کړئ:**

**– اللّهُ لاَ إِلَـٰهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ .................. وَلاَ نَوْمٌ ......**

**– وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ .........................**



# د آیت الکرسي فضیلتونه

- د آیت الکرسي ویل ډیر ثواب لري.

پیغمبر ﷺ فرمایلي دي:

«کله چې ویده کیدلې آیت الکرسي ووایه، په دې توګه د الله جل جلاله له طرفه درته یو ساتونکی ټاکل کیږي او تر سهاره هیڅ شیطان درته نږدې کېدای نشي». [1]

- موږ له هر فرض لمانځه وروسته آیت الکرسي وایو.

---

(۱)- صحیح البخاری




**زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته د آیت الکرسي د فضیلتونو په اړه خبرې وکړي.**




**۱ - پیغمبر ﷺ د آیت الکرسي په اړه څه فرمایلي دي؟**

**۲ - لاندې جملې بشپړې کړئ:**

**۱ - د آیت الکرسي.................. ثواب لري.**

**۲ - موږ له هر فرض لمانځه وروسته...................... وایو.**



## نهم لوست

# توحید

د اللهﷻ په وحدانیت باور لرلو ته توحید وايي.

اللهﷻ یو دی.

شریک او ساری نه لري.

له هر عیبه پاک دی.

موږ یوازې د اللهﷻ عبادت کوو.

اللهﷻ د ټولو مخلوقاتو پیدا کوونکی دی.

یوازې اللهﷻ په غیبو پوهیږي.








**زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته الله ﷻ ته د عبادت په اړه په خپلو منځونو کې خبرې وکړي.**




**۱- توحید څه ته ویل کېږي؟**

**۲- چا ټول موجودات پیدا کړي دي؟**





# شرک

له الله ﷻ سره د بل چا شریک او سیال ګڼلو ته شرک وايي.

شرک لویه ګناه ده.

له الله ﷻ څخه پرته بل چا ته عبادت کول شرک دی.

الله ﷻ مشرک نه بښي.

مشرک جنت ته نشي داخلېدای.



## فعالیت

زده کوونکي دې د لوست له متن څخه په ګټې اخیستنې سره په خپلو منځو کې سوال او ځواب ترسره کړي.



## ارزونه

۱ - شرک څه ته ویل کېږي؟

۲– آیا مشرک جنت ته داخلیدای شي؟



# د شرک بېلګې

**د شرک بېلګې عبارت دي:**

- **له الله ﷻ څخه پرته بل څه ته سجده کول.**
- **له الله ﷻ څخه پرته د بل څه عبادت کول.**
- **د بتانو، اور او نورو شيانو تعظيم او درناوی.**
- **د الله ﷻ په صفاتو کې د مخلوق شريکول.**




**زده کوونکي دې د شرک د بېلګو په اړه خبرې وکړي.**




**۱ - له الله ﷻ څخه پرته بل څه ته سجده کول څه ګڼل کیږي؟**

**۲– د شرک بېلګې بیان کړئ.**






کفر د انکار کولو په معنا دی.

د کفر بېلګې:

- د الله جل جلاله او د هغه له رسول ﷺ څخه انکار کول.

- د اسلام له دين څخه انکار کول.

- د اسلام په دين ملنډې وهل.

- خپل ځان ته کافر ويل.

موږ بايد د کفري الفاظو له ويلو څخه ځان وساتو.







## فعالیت

زده کوونکي دې د لوست له متن څخه په ګټې اخیستلو سره د کفر په اړه په خپلو منځو کې خبرې وکړي.



## ارزونه

۱- کفر د څه په معنا دی؟

۲- د کفر د بېلګو نومونه ولیکئ.

۳- لاندې جمله بشپړه کړئ:

- مونږ باید..................... له ویلو ځان وساتو.





# استنجاء(۱)






**استنجاء:**

**د شرم ځای پاکولو ته استنجاء ویل کیږي.**

**کولای شو په لاندنیو شیانو استنجاء وکړو:**

- **اوبه**
- **لوټه**





- تیږه

- تشناب کاغذ

**موږ باید په چپ لاس استنجاء وکړو.**

**کله چې نجاست زیات وي په اوبو سره استنجاء واجبه ده.**




زده کوونکي باید د هغو شیانو په هکله خبرې وکړي چې استنجاء پرې کیږي.




۱- استنجاء تعریف کړئ؟

۲- په کومو څیزونو سره استنجاء کول روا دي؟



# استنجاء (۲)




## هغه څه چې استنجاء پرې روا نه ده:

- ډوډۍ
- هډوکی
- خوشايي
- او همدارنګه په ښي لاس سره استنجاء روا نه ده.



## فعالیت

زده کوونکي دې د هغو ځیزونو په اړه چې استنجاء پرې روا نه ده یو له بل څخه پوښتنې وکړي.



## ارزونه

۱ - د هغو ځیزونو نومونه واخلئ چې استنجاء پرې روا نه ده.

۲ - استنجاء په دغو ځېزونو روا نه ده:

۱-.................. ۲-.................. ۳-.................. ۴-.............



# د اوداسه فرضونه

## د اوداسه فرضونه څلور دي






۱ - د ټول مخ مينځل.

۲ - د لاسونو مينځل له څنګلو سره.

۳ - څلورمه برخه د سر مسح کول.

۴ - د پښو مينځل له ښنګريو سره.







## فعالیت

**زده کوونکي دې د ښوونځي په انګړ کې د ښوونکي تر لارښوونې لاندې عملاً اودس وکړي.**



## ارزونه

**۱- د اوداسه فرضونه څو دي؟**

**۲- د اوداسه د فرضونو نومونه واخلئ؟**



شپاړسم لوست

# د اوداسه اوبه

## په لاندنیو اوبو سره اودس کول روا دي:







۱ - د باران اوبه

۲ - د چینو او ویالو اوبه

۳ - د کوهیانو اوبه

۴ - د سیند اوبه

۵- د واورې، ږلۍ او یخ اوبه

۶- د لویو ډنډونو او حوضونو اوبه

پـه مـوږ لازمه ده چـې پـه پاکو اوبـو اودس وکړو.




زده کوونکي دې د هغو اوبو په ډولونو چې اودس کول پرې روا دي خبرې وکړي.




۱- په کومو اوبو اودس کول روا دي؟

۲- لاندې جمله بشپړه کړئ:

- پر موږ لازم دي.................. .................. وکړو.





# د تیر لوست ادامه

په لاندې اوبو پاکوالی روا نه دی:

۱ - هغه مایعات چې اوبه نه ورته ویل کیږي.

لکه: د مېوې اوبه، ښوروا، چاې او داسې نور.

۲ - هغه اوبه چې ناپاک شی پکې لویدلی وي.

موږ باید په ناپاکو اوبو اودس ونه کړو.








**زده کوونکي دې د پاکو او ناپاکو اوبو په اړه په خپلو منځو کې خبرې وکړي.**




**۱- په کومو اوبو اودس کول روا دي؟**

**۲- په کومو اوبو اودس کول روا نه دي؟**

**۳- لاندې جمله بشپړه کړئ:**

**- مور باید................................ وکړو.**





# د اوداسه ماتوونکي

د اوداسه ماتوونکي په لاندې ډول دي:

۱ - غائطه مواد، متيازې او د بادو وتل له مقعد ځخه.

۲ - له بدن ځخه د وينې او زوو وتل او جاري کېدل.

۳ - په ډکه خوله قی کول.

۴ - خوب

۵ - بېهوشي

۶ - ليونتوب

# ۷ - په لمانځه کې په لوړ غږ خندل.




زده کوونکي دې په وړو ډلو وویشل شي او د اوداسه ماتوونکي دې یو له بل څخه وپوښتي.




۱ - د اوداسه ماتوونکي څو دي؟

۲ - د اوداسه ماتوونکو څیزونو نومونه واخلئ.







# د لمانځه وختونه



**۱- د سهار د لمانځه وخت:**

د صبح صادق (رښتيني سبا) له راختلو څخه پيل د لمر تر راختلو پورې.

**۲- د ماسپښين د لمانځه وخت:**

د لمر له زوال څخه د هر شي د سيوري تر دوه برابره کېدلو پورې.

**۳- د ماز ديگر د لمانځه وخت:**

د ماسپښين د لمانځه له پای څخه د لمر تر لويدلو پورې.

**۴- د ماښام د لمانځه وخت:**

د لمر له لوېدلو څخه د شفق تر ورکېدلو پورې.





## ۵ - د ماخوستن د لمانځه وخت:

## د ماښام د لمانځه له پای څخه د شپې تر آخره.

د لمانځه وختونه







زده کوونکي دې د لمانځه د وختونو په هکله یو له بل څخه پوښتنې وکړي.




۱ - څوک د لمانځه وختونه بیانولی شي؟

۲ - څوک به د ماسپښین د لمانځه وخت ووایي.





شلم لوست

# د لمانځه فرضونه

## په لمانځه کې اووه څیزونه فرض دي:

## ۱- تحریمه تکبیر

## ۲- قیام (دریدل)





## ۳- قرائت (ویل )





## ۴- رکوع



## ۵- سجده





## ۶- وروستۍ قعده (ناسته).





## ۷- له لمانځه څخه وتل (سلام ګرځول).








ښوونکی دې په زده کوونکو باندې په عملي بڼه لمونځ وکړي.




۱- د لمانځه فرضونه څو دي؟

۲- د لمانځه د فرضونو نومونه واخلئ.



# وتر لمونځ

د وتر لمونځ واجب دی.

د وتر لمونځ درې رکعته دی.

لمونځ کوونکی:

- په دریم رکعت کې د سورت له ویلو وروسته د تکبیر په ویلو سره دواړه لاسونه د تحریمه تکبیر په څېر پورته کوي.
- وروسته له تکبیر ویلو ښی لاس په چپ لاس ږدي او د قنوت دعا وایي.








زده کوونکي دې د وتر لمونځ په ټولګي کې په عملي بڼه اداء کړي.




۱- د وتر لمونځ څو رکعته دی؟

۲- د قنوت دعا د وترو په کوم رکعت کې ویل کیږي؟

۳- لاندې جمله بشپړه کړئ:

- د وتر لمونځ ............. دی.



# د قنوت دعا[1]

اللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِيْنُکَ وَنَسْتَغْفِرُکَ وَنُؤْمِنُ بِکَ وَنَتَوَکَّلُ عَلَيْکَ وَنُثْنِيْ عَلَيْکَ الْخَيْرَ ...




زده کوونکي دې د قنوت د دعا لومړۍ برخه په ډلییزه توګه په لوړ غږ ووایي.




۱ - د قنوت دعا لومړۍ برخه په یاد ووایئ.

۲ - لاندې جمله بشپړه کړئ:

- اللّٰهم انا نستعیْنک............... و نؤمن بک.....................................



# د قنوت دعا (۲)

**وَنَشْكُرُكَ وَلا نَكْفُرُكَ ونَخْلَعُ وَنَتْرُكُ مَنْ يَّفْجُرُكَ...**







## فعالیت

زده کوونکي دې د قنوت دعا دویمه برخه په لوړ غږ ووایي او له یو بل څخه دې پوښتنې وکړي.



## ارزونه

د قنوت دعا دویمه برخه له یاده ووایئ.





# د قنوت دعا (۳)

**اللّٰهُـمَّ اِیَّاکَ نَعْبُـدُ وَلَکَ نُصَلِّي وَنَسْـجُدُ وَاِلَیْکَ نَسْعَی...**










زده کوونکي دې د قنوت دعا دریمه برخه په ډلییزه توګه په لوړ غږ وو وایي.




۱ - د قنوت دعا دریمه برخه له یاد ووایئ.

۲ - لاندې جمله بشپړه کړئ:

- اللّٰهم ایاک نعبد.............................. نسعی.





# د قنوت دعا (۴)

وَنَحْفِـدُ وَنَرْجُـوا رَحْمَتَکَ وَنَخْشَـى عَذَابَکَ اِنَّ عَذَابَکَ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ.








زده کوونکي دې د قنوت دعا وروستۍ برخه په لوړ غږ ووايي.




۱- د قنوت دعا آخره برخه ولولئ.

۲- د قنوت دعا له یاده څخه ووایئ.





# د جماعت لمونځ

**پیغمبر ﷺ فرمايلي دي:**

**«په جماعت سره لمونځ کول له ځان ته لمانځه څخه اووه ویشت درجې فضیلت لري»[1]**

**ـ موږ په جماعت سره لمونځ اداء کوو.**

**ـ د ماسپښين او مازديګر لمونځونه په جماعت سره په خفيه (ورو) ويل کېږي.**

**ـ د ماښام، ماخوستن او سهار لمونځونه په جماعت سره په جهر (لوړ غږ) ويل کېږي.**

**موږ په جهري لمونځونو کې د امام قرائت ته غوږ نيسو.**

---

۱- البخاری






زده کوونکي دې د جماعت د لمانځه په اړه خبرې وکړي.




۱ - پیغمبر ﷺ د جماعت د لمانځه په اړه څه فرمایلي دي؟

۲ - کوم لمونځونه په جماعت سره په خفیه (ورو) ویل کېږي؟

۳ - کوم لمونځونه په جماعت سره په جهر (لوړغږ) ویل کېږي؟



# صف برابرول

حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي:

«صفونه مو برابر کړئ ځکه د صفونو برابرول د لمانځه برخه ده»[1]

- یو د بل څنګ ته اوږه په اوږه درېدل سنت دي.

- د صفونو نه برابرول د حسد او نفاق لامل ګرځي.

---

۱- البخاری










زده کوونکي دې په ټولګي کې د صف برابرول تمثیل کړي.




۱- پیغمبر ﷺ د لمانځه د صف په اړه څه فرمایلي دي؟

۲- د صف نه برابرول د څه سبب ګرځي؟

۳- لاندې جمله بشپړه کړئ:

- یو د بل څنګ .............................. سنت دي.



# د مسجد آداب

جومات ته له ننوتلو څخه مخکې اودس کوو.

په ښۍ پښه جومات ته ننوځو او دا دعا وایو:

﴿اَللّٰهُمَّ افْتَحْ لِیْ اَبْوَابَ رَحْمَتِکَ﴾

کله چې له جومات څخه راوځو، نو چپه پښه لومړۍ کوو او دا دعا وایو: ﴿اَللّٰهُمَّ اِنِّی اَسْئَلُکَ مِنْ فَضْلِکَ﴾.

د چا د لمانځه په مخ کې نه تېرېږو.

په جومات کې بې ځایه او په لوړ غږ خبرې کول ښه نه دي.





## فعالیت

زده کوونکي دې د جومات د آدابو په اړه خبرې وکړي.



## ارزونه

۱ - د جومات له آدابو څخه څو بېلګې ووایئ.

۲ - لاندې جمله بشپړه کړئ:

- جومات ته له ننوتلو مخکې...............



# د اودس ماتي آداب

موږ باید د اودس ماتي په وخت کې لاندې آداب مراعات کړو:

کله چې بیت الخلاء ته ځو، باید دا دعا ووایو:
«اللّٰهُمَّ اِنِّیٓ اَعُوْذُ بِکَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ»

له وتلو څخه وروسته دا دعا وایو: «غُفْرَانَکَ»

د ننوتلو په وخت کې کینه پښه او د وتلو په وخت کې ښی پښه مخکې کوو.

د اودس ماتي په وخت کې مخ او شا د قبلې لوري ته نه کوو.





په اوبو کې متیازې نه کوو.

په کیڼ لاس سره د نجاست ځای پاکوو.



فعالیت

زده کوونکي دې د اودس ماتي د آدابو په اړه خبرې وکړي.



ارزونه

۱ - بيت الخلاء ته د ننوتلو دعا ووايئ.

۲ - د بيت الخلاء څخه د راوتلو دعا ووايئ.

۳ - د نجاست ځای په کوم لاس پاکوو؟



# د مسلمان اخلاق

پیغمبر ﷺ فرمایلي دي «زه د ښو اخلاقو د بشپړولو لپاره رالیږل شوی یم».[1]

د مسلمان له اخلاقو څخه دا دي:

- هیڅوک سپک نه ګڼي.
- یو او بل ته ښښنه او تېریدنه کوي.
- له خپل مور او پلار سره نیکي کوي او د هغوی پر وړاندې په نرمۍ سره خبرې کوي او اطاعت یې کوي.
- له بدګمانۍ او جاسوسۍ څخه ځان ساتي.

---

۱- سنن الکبرا للبیهقی





- د بدو لفظونو له ویلو څخه ځان ژغوري.
- دروغ نه وایي، غیبت نه کوي او له چا سره دوکه نه کوي.
- او چاته کنځلې هم نه کوي.




زده کوونکي دې د مسلمان د اخلاقو په اړه یو له بل سره خبرې وکړي.




۱- پیغمبر ﷺ د اخلاقو په اړه څه فرمایلي دي؟
۲- د مسلمان د اخلاقو څو بېلګې ووایئ؟



# د مور او پلار حقوق

**پیغمبر ﷺ فرمایلي دي: «په رښتیا سره الله جل جلاله تاسو ته د خپلو میندو او پلرونو په هکله د نیکۍ کولو امر کوي» (۱).**

- **مور له خپل مور او پلار سره مینه کوو.**
- **له مور او پلار سره تل مرسته کوو.**
- **د خیر په کارونو کې د هغوی پیروي کوو.**
- **له خپل مور او پلار سره نیکي کوو.**
- **د هغوی په وړاندې په ادب او درناوي**

---

۱- د احمد او ابن ماجه څخه روایت

چلند کوو.

- د هغوی غږ ته ژر ځواب وایو.




زده کوونکي دې د مور او پلار د حقونو په اړه په بېلابېلو ډلو کې خبرې وکړي.




۱- پیغمبر ﷺ د مور او پلار په اړه څه فرمایلي دي؟

۲- د مور او پلار د حقونو نومونه واخلئ.

۳- لاندې جمله بشپړه کړئ:

............ په وړاندې.............................. چلند کوو.

دوه دیرشم لوست

# د ښوونکي په وړاندې اداب

رســول الله ﷺ فرمايلي دي «په تحقيق سره زه ښوونکی رالیږل شوی یم».[1]

- ښوونکی زموږ د مور او پلار په څیر دی.
- کله چې لوست پیل کوي، نو ښه غوږ ورته نیسو.
- د هغه د خبرو په منځ کې نه غږیږو.
- د هغـه پـه موجودیـت کې خبـرې، لوبې او شوخي نه کوو.
- کله چې په لوســت کې کومه ستونزه ولرو، نو د هغه څخه پوښتنه کوو.

---

۱- د ابن ماجه روایت





د هغه له اجازې څخه پرته له ټولګي څخه بهر نه وځو.

- د ښوونکي نصيحت منو.






له ښوونکي سره د ښه چلند په اړه خبرې وکړئ.




۱- له ښوونکي سره باید څنګه چلند وشي؟

۲- پیغمبر ﷺ د ښوونکي په اړه څه فرمایلي دي؟





# له خپلوانو سره ښه چلند

رسول الله ﷺ فرمايي: «هر څوک چې غواړي روزي يې زياته او عمر يې اوږد شي، نو بايد صله رحمي ولري». [1]

- مورږ له خپلوانو سره مينه لرو.
- له خپلوانو سره سم چلند کوو.
- له هغوی سره اړيکې نه پرې کوو.
- له هغوی سره په کارونو کې مرسته کوو.
- هغوی ته ضرر نه رسوو او تکليف نه ورکوو.



## فعاليت

زده کوونکي دې له خپلوانو سره د ښه چلند په اړه خبرې وکړي.



## ارزونه

۱- له خپلوانو سره بايد څرنګه چلند وکړو؟

۲- پيغمبر ﷺ له خپلوانو سره د چلند په اړه څه فرمايلي دي؟

---

۱- صحيح البخارى.





## څلور دېرشم لوست

# د چاپېریال پاکوالی

پیغمبر ﷺ فرمایلي دي:

«خپل چاپېریال پاک وساتئ»[1]

موږ باید خپل چاپېریال پاک وساتو.

- د کور او ښوونځي په شاوخوا کې ونې کښینوو او ساتنه یې کوو.

- ګلانو او چمنونو ته اوبه ورکوو.

- خځلې په ځانګړو ځایونو کې اچوو.

- د میوې پوستکي او خوراکي څېزونه په لار

---

۱- سنن الکبرا للبیهقی – سنن ترمذی

کې نه اچوو.

- د چاپېریال په شـین والـي او تازه والي کې کوښښ کوو.






زده کوونکي دې د ژوند د چاپېریال د پاک ساتلو په اړه خبرې وکړي.




د خپل ژوندانه د چاپېریال د پاکوالي په اړه باید څه وکړو؟

# له ژوو (څارويو) سره چلند

«پیغمبر ﷺ د ژوو له جنګولو او هغوی ته له ضرر رسولو څخه منع کړې ده». (۱)

مونږ د حیواناتو په وړاندې له مهربانۍ څخه کار اخلو.

- ژوو ته واښه او اوبه ورکوو.
- هغوی نه وهو او نه پرې ظلم کوو.
- د ضرر رسوونکو حشراتو، لکه: مار، لړم او داسې نورو وژل روا دي.

---

۱- سنن ابی داود







## فعالیت

زده کوونکي دې له ژوو سره د چلند په اړه خبرې وکړي.



## ارزونه

۱- پیغمبر ﷺ د ژوو د جنګولو په اړه څه فرمایلي دي؟
۲- له حیواناتو سره د ښه چلند په اړه څو مثالونه ووایئ.

# پاکوالی

پیغمبر ﷺ فرمایلي دي: «د اسلام دین د پاکوالي پر بنسټ ولاړ دی».[1]

- موږ هر سهار خپل غاښونه په مسواک یا بورس پاکوو.

موږ د ډوډۍ له خوړلو مخکې او وروسته خپل لاسونه مینځو.

- په ناپاکو لاسونو ډوډۍ نه خورو.

خپل بدن ښه مینځو او پاک کالي اغوندو.

له تشناب وتلو څخه وروسته خپل لاسونه په

---

۱- صحیح البخاری

## صابون او پاکو اوبو مينځو.

## پاکوالی له ناروغيو څخه مخنيوی کوي.








زده کوونکي دې د پاکوالي په اړه يو له بل سره خبرې وکړي.




۱ - پيغمبر ﷺ د پاکوالي په اړه څه فرمايلي دي؟

۲ - لاندې جملې بشپړې کړئ:

- پاکوالی له ................................... کوي.

- په........................ لاسونو ډوډی نه خورو.

اووه دیرشم لوست

# بې ځایه خبرې کول

پیغمبر ﷺ فرمايلي دي «څوک چې په الله ﷻ او د آخرت په ورځ ایمان لري، نو تل باید نیکې خبرې وکړي او یا دې چُپ اوسي»». (۱)

- له هغو خبرو څخه چې زموږ له پاره گټه نه لري ځان ساتو.
- له اړتیا پرته زیاتې خبرې نه کوو.
- په فکر او غور سره خبرې کوو.
- له بېکاره خبرو څخه ځان ژغورو.



فعالیت

زده کوونکي دې د بې ځایه خبرو په اړه خبرې وکړي.



ارزونه

پیغمبر ﷺ د بې ځایه خبرو کولو په اړه څه فرمايلي دي؟

---

۱- صحیح البخاری





# د مسلمان خویونه

پیغمبر ﷺ فرمایلي دي: «مسلمان هغه څوک دی چې بل مسلمان د هغه د لاس او ژبې له ضرر څخه په امن وي».[1]

د مسلمان ځینې خویونه دادي:

- مسلمان د ټولو مخلوقاتو سره ښه چلند کوي.
- په خپله وعده وفا کوي.
- تل رښتیا وایي او له دروغو څخه ډډه کوي.
- صبر کوونکی او شکر ایستونکی وي.
- خلکو ته په ښو کارونو امر او له بدو کارونو څخه یې منع کوي.
- خپله غوسه زغمي او د خلکو تېروتنې ښښي.




زده کوونکي دې د مسلمان د خویونو په اړه خبرې وکړي.




۱- د مسلمان د څو خویونو نومونه واخلئ.

۲- پیغمبر ﷺ د مسلمان په هکله څه فرمایلي دي؟

---

۱- صحیح البخاری



